# کندهار

اطلاعات او کلتور

د ۱۳۵۳ کال
شپږمه گڼه



په کندهار کی د پښتونستان د ملی ورځی د لمانځلو یوه برخه

# په دی گڼه کی

# د سواد او مطبوعاتو جهاني ورځ

دوږی ۱۷ نیټه چې د سواد او مطبوعاتو د جهاني ورځې سره برابره وه

په ټول هیواد کې په خاص ډول ولمانځل شوه

د هیواد د مطبوعاتو مقالو او مضامینو په خپرولو د دې ورځې لمانځنه وکړه او د ټولنې

د پرمختګ په لاره کې ئې د سواد او مطبوعاتو ارزښت روښانه کړ.

واقعاً په اوسنۍ نړۍ کې چې اساس ئې پر ساینس او تکنالوژۍ باندې

ولاړ دی، سواد د بشري ژوندانه د اشدو ضروریاتو څخه شمېرل کیږي. له دې

امله نن ورځ په ټوله نړۍ کې د بیسوادۍ پر ضد مبارزه په بین المللي سویه

روانه ده.

که څه هم د پوهنې او معارف انکشاف د بیسوادۍ

د له منځه وړلو د پاره یوه لوړه سویه مبارزه کوي خو څرنګه چې د پوهنې

د تحصیل امکانات په عامه سویه هر چا ته میسر نه دي نو د او ظیفه مطبوعاتو او نورو

مربوطو موسسو پر غاړه لري چې د بیسوادۍ سره په یوه پراخه او وسیع جبهه کې مبارزه وکړي. په دې اساس نو د مطبوعاتو رول د سواد په تعمیمولو کې ډېر مهم او مؤثر دی. ځکه

مطبوعات د جرایدو، مجلو، راډیو ګانو، تیاترونو، ټلویزیونو، سینما ګانو او

داسې نورو وسایلو په ذریعه په عام فهمه سویه د ټولنې د اکثریت د پاره خدمت کوي

په دې اساس نو مطبوعات او سواد یو له بله مستقیمه رابطه لري.

له نېکه مرغه د افغانستان جمهوري دولت د خپل آغاز له وخته د بیسوادۍ سره کلکه

مبارزه شروع کړې ده لکه څرنګه چې د دولت ښاغلي رئیس د غه ټکي ته اشاره کړې ده:

«جمهوري دولت به د عمومي بیسوادۍ د لیرې کولو او په هیواد کې د فرهنګي تحول

د منځ ته راوستلو په غرض د ملي مترقي فرهنګ پر اساس مبارزه وکړي او ځوان نسل به تقو اداره، وطنپرست او خلکو ته د خدمت کولو په روحیه وروزي»

په دغه منظور د تیر کال



د هیواد ستر لیکوال او د مطبوعاتو لومړنی خدمتګار مرحوم محمود طرزی

---

په نیمایي کې د پوهنې د وزارت په چوکاټ کې د بیسوادۍ سره د مبارزې ملي اداره فعاله کړه شوه څو د علمي اساساتو له مخې د بیسوادۍ مخنیوی وکړي.

د بیسوادۍ سره مبارزه په فردي توګه د هر وطنپرست ځوان ایماني او وجداني وظیفه ده څو په دې ډول د هیوادوالو عامه افکار د مثبتو اساسي او بنیادي تحولاتو د پاره اماده شي او د جمهوري انقلاب سپېڅلي هیلې چې د هیواد د علم او فرهنګ د تعلیم په لاره کې یې لري په ډېر لږ وخت کې ترسره شي.

# د پښتونستان د مسئلې د حل یوازنی لار د خود ارادیت حق دی

پښتونستان یا د انګریزي استعمار په تیره چاړه د افغانستان پرې سوی مړوند هغه سیمه ده چې د ګران

هیواد د ختیځ او جنوب په امتداد پرته ده او د هغې جلا والی د ډیورنډ د توری کرښې په ذریعه په ۱۸۹۳ع

کال انګریزانو پر افغانستان تحمیل کړ.

هو! دا د وخت د استعمار او استثمار

خاصه وه چې ملتونه او قومونه سره ووېشي، جلا جلا یې کړي، بېلانو واکدارۍ او حکومت پرو کړي د دغې

ناوړې پالیسۍ یو ښه مثال د افغانستان د پښتنو وېشل او د پاکستان جوړول وه.

کله چې په ۱۹۱۹ کال د انګریزانو لاس د افغانستان څخه لنډ سو او کله چې په ۱۹۴۸ کال له هند څخه په وتلو

مجبور سول نو دغه ترټل سوی استعمار یو وار بیا د خپل مکر څخه کار واخیست او د سیاست په شطرنج کې یې

داسې چال را مخ ته کې چې افغانستان ته یې یو لوی جنجال په غاړه کې ور واچاوه.

دغه جنجال نه یوازې د افغانستان د پاره بلکه د نیمې قارې د پاره یو لوی دردسر دی او هغه عبارت د پاکستان د جوړولو څخه دی چې د هند سره یې د هندوانو او مسلمانانو په نامه جنګوي

او د افغانستان سره یې د پښتنو د حقوقو د غوښتلو په غرض. د انګریزي استعمار چالاکي خو دا وه چې د اسلام په قیافه یې یو داسې هیواد

نوی جوړ کې چې د تل د پاره په نیمه قاره کې د دوی د منافعو نمایندګي وکي څکه یې نو



د پښتونستان ستر مشر جناب خان عبدالغفار خان

زموږ د پښتنو او بلوڅو ورونو
واک د پاکستان یا په بل عبارت
دانګریزي استعمار ممثل
پنجابي حکومت ته ور پر-
ېښود.
د پاکستان جوړولو ته که
په سیاسي نظر وکتل سي،
دا هر چا ته لهورا په معلومېږي
چې په کم اساس پښتانه او بلوڅ
د پنجابیانو سره یو ملت
جوړولای سي؟ آیا یو د بله
ګډ تاریخ لري؟ آیا په یوه
سره شریک دي؟ آیا مشترک
عنعنات او افتخارات لري
او که یې ګډې سره شریکې
دي؟
څرګنده ده چې په هر
صورت کې جواب منفي دی
په داسي حال کې چې
پښتانه او بلوڅ د افغانستان
سره نه شلیدونکې اړیکې لري





د ملي عوامي ګوند مشر
خان عبدالولي خان

د ګډ تاریخ، عنعناتو،
ملي افتخاراتو څخه
نیولې تر مشترک فرهنګ
او مشترکي ژبې پوري.
خو بیا هم سره د دغو ټولو
مشترکو علایقو افغانستان

هیڅکله دا ادعا نه ده کړې
چې دا سیمه دې افغانستان
ته وسپارل شي بلکه
افغانستان په ملي او بین
المللي سویه تل اعلام
کړی دی چې پښتنو او
بلوڅو ورونو ته دې د خود
ارادیت حق ورکړه سي
او دغه ملي مسئله دې د خود


شهید خان عبدالصمد خان


مرحوم حاجي میرزا
علي خان

اراد یت د حق په رڼاکی دروغی جوړی له
لاری حل و فصل سی.
خو پاکستانی واکداران دا موضوع

یوه داخلی موضوع ګڼی او وایی چی په
هغه کی چا ته د مداخلی کولو حق نه ورکوو.
په داسی حال کی چی د پورته منطقی دلایلو

په اساس دا یوه داخلی موضوع هیڅ نه بلل
کیږی، ځکه زموږ د پښتنو او بلوڅو ورونو
درد و غم، خوښی او خوشالی د افغانی ورونو

سره مستقیم اړیکی لری ځکه نو افغانستان
د هغو په مسایلو کی بی علاقی نشی پاته
کیدای.

لکه څرنګه چی دا موضوع د انقلاب
لارښود په کلکه تائید کړی ده.
بل دلیل دا دی چی د پاکستان د جوړیدو

د وخت راهیسی بیا تر ننه ورځی پوری
د پښتونستان د مسئلی د پاره د پښتنو او
بلوڅو مشرانو د خود ارادیت د حق



د جمعیت العلمای اسلام د
ګوند مشر مولانا مفتی محمود



ښاغلی اجمل خټک
ملی او مترقی شاعر



ښاغلی میر غوث بخش
بزنجو



ښاغلی ارباب سکندر
خلیل



ښاغلی عطاءالله مینګل



عالیجاه خان محمد ایوب
خان اڅکزی

غوښتنه کوي او ددغې لانجې
دحل یوازنۍ لار ئې بولي.
مګر د پاکستان غیر قانوني
حکومت چې اساس یې همیشه
پر مارشالا باندې بنا دی
،ددوی دغه غوښتنې ته د
ماشیندارو او ټانکو په واسطه
جواب ورکوي یا د جېل خانو
په ډکولو.

داد عصر غوښتنه ده چې
ملتونه باید خپل سرنوشت
په خپله وټاکي او استعمار
باید له نړۍ څخه خدای په
اماني وکړي ځکه یو قام چې
ویښ سي په ټانکو او ماشیندا-
رونه بیدېږي او نه په جېل-
خانو کې ایسار یدلای سي.
بلکه د استعمار ګرانو دغه
ناوړه رویه د هغو د عدم تشدد
فلسفې ته مجبوره د تشدد
ښه ور کوي او نتیجه به ئې
هغه د بنګله دیش د قضیې
تکرار وي او بسو د دې پېښې
مسئول به بیا هم د پاکستان
واکداران وي ځکه افغانستان
او پښتونستان تل دا په ډاګه
اعلام کړې ده چې د پښتونستان
مسئله باید د روغې جوړې
او خبرو له لارې حل سي.
مګر د پاکستان «اسلامي»
حکومت؟!! خبرو ته نه حاضرېږي
دا هغه اسلامي حکومت دی
دی چې په زرو زرو بې ګناه
(پاته په ۲۹ مخ کې)


مرحوم قاضي عطاءالله


عالیجاه پاچا ګل صاحب


ښاغلی خیر بخش مري


ښاغلی شیر محمد خان مري


شهید عبدالصادق کاسي


شهید مولوي شمس الدین

پوهنوال عبدالشکور رشاد

# په اردو ژبه کې د پیر محمد کاکړ دڅو بیتو منظومه ترجمه

## ملا پیر محمد کاکړ څوک و

کندهاری ملا پیر محمد حضرت مولانا ابوالوفاء الافغاني په روایت مهترزی سنځیا کاکړ دی چې د کاکړستان دهندو باغ په سیمه کې زیږېدلی دی نوموړی مولانا صاحب داهم زیاته کړې ده: ملک طیب مرحوم یې د کلي نوم هم یاداوه خو اوس زما له یاده وتلی دی. (۱)

ډاکتر انعام الحق کوثر د ملک صالح محمد لهړي د لیکنې په حواله د ملا پیر محمد کاکړ دزوکړې کلی «کان مهترزی» ښوولی دی چې د ژوب د سیمې دهندو باغ په علاقه کې پروت دی. (۲)

ملا پیر محمد کاکړ خپل تحصیلات په کندهار کې بشپړ کړي او دلته یې ثبت سوی دی تر دې چې د احمدشاهي افغانستان په پایتخت اشرف البلاد کې یې له دې نا بوده دنیا سترګې پټې کړې دې او د حضرت جي بابا (رح) زیارت ته نژدې د شاه ولي پر غاړه په ابدي خوب بیده دی (۳)

ملا پیر محمد کاکړ د سدوزو د پاچهۍ په لومړي نیمایي کې د کندهار مشهور مدرس عالم او د نامه څښتن فاضل و، له پاچاهي خزانې څخه یې د کندهار د لویو او مدرسو ملایانو په ډله کې تحیره او مواجب درلود (۴) او په دربار کې په درنه سترګه ور ته کتل کېده.

(۱) د پیر محمد کاکړ دیوان د کابل چاپ ۱۴۱ مخ.
(۲) بلوچستان مین فارسی شاعری- د کویټې چاپ-۴۵-مخ د بلوچستان نومې اثر د ۵۶ مخ په حواله.
(۳) پښتانه شعراء لومړی ټوک ۳۴۰ مخ د کابل چاپ.
(۴) وګورئ: په تاریخ خرقه معظمه کې د شاه محمود سدوزي فرمان.

ملا پیر محمد کاکړ له لوی علمه سره یو منلی شاعر هم ؤ. په پښتو، پارسي او عربي ژبو یې له سوز او خوند ډک شعرونه ویل(۵). د ذوق خاوندانو یې د ادب له باغه څخه خوشبویې ګیډۍ تر هیواده پورې په سوغات کې وړلې او د جنت نظیر کشمیر خوشنویسانو او مذهبانو

به له افغاني امیرانو څخه د ده د دیوان په لیکلو درانه خلاتونه او انعامونه تر لاسه کول(۶).

ملا پیر محمد خپل دیوان (چې بیتونه یې پنځوزرو ته رسیږي) په ۱۱۹۶ھ.ق کال پای ته رسولی دی او د دیوان په پای کې یې ویلي دي:

زر سل شپږ نوي کلونه　　　　د هجرت تیر شوي ونه
ما انشاء د عشق دیوان کړ　　　　په پښتو مې ښه بیان کړ
په دې تمه چې یادګار شي　　　　او منثور په هر دیار شي

(د کابل چاپ دیوان-۱۴۰ مخ)

د ملا پیر محمد کاکړ د دیوان خورا نیمګړې نسخه تقریباً نیمه زده که (قرن) پخوا په هندوستان کې چاپ سوې وه، په ۱۳۲۵ اش کال یې د محترم فاضل عبدالروف بېنوا په مقدمه مقابلې او تصحیح یوه بله نسبتاً بشپړه نسخه په کابل کې چاپ سوه. خو ماچې د پیر محمد

کاکړ د دیوان کومه قلمي نسخه په کندهار کې له فضل الهي ساګزي څخه لیدلې ده په هغه کې داسې غزلې سته، چې د کابل په چاپي نسخه کې نه دي راغلي.

د پیر محمد کاکړ دوهم اثر معرفة الافغاني دی (۷) چې د لوی احمد شاه بابا (۱۱۶۱-۱۱۸۶ھ ق) د دوهم زوی شهزاده سلیمان حضور ته یې «د اغاوجیه» په واسطه وړاندې کړی دی(۸).

معرفة الافغاني چې ۵۴ کاله پخوا په ۱۳۴۱ھ ق کال د کندهار د مشهورو کتاب پلورونکو ملاجان محمد او بسم الله په پر مایښت د لاهور په اسلامیه سټیم پریس کې چاپ سوی دی د پښتو یو داسې تدریسي کتاب دی چې داوسنیو معلوماتو له مخې د پښتو ژبې لومړی تدریسي کتاب بلل کېدای سي. فاضل استاد پوهاند عبد الحی حبیبي د پښتانه شعراء د لومړي ټوک په ۳۴۱ مخ کې کښلي دي چې د معرفة الافغاني شروع په دغو بیتو سوې ده:

---

(۵) وګورئ: بلو چستان مین فارسي شاعري له ۴۵ څخه تر ۵۰ مخه پورې-د ملا پیر محمد کاکا د پښتو دیوان ۲۵ مخ.

(۶) وګورئ: د کابل دارګټ په کتابخانه کې د پیر محمد کاکړ د دیوان خوشخطه او مطلا نسخه چې په کشمیر کې لیکل سوې ده.

(۷) د معرفت الافغاني یو بل کتاب هم سته چې میجر عبدالرشید کښلی او په ۱۳۴۱ھ ق کال په لاهور کې چاپ سوې دی.

(۸) وګورئ د معرفة الافغاني ۴۸ مخ- د لاهور چاپ- «اغاوجیه» د سدوزو د دربار له ملازمینو څخه ؤ.

پس له حمده له درود ه          سو ه د شاه مدحه مقصوده
شاه سلیمان د حکم لمر دی          کل عالم پرې منور دی
د شاه تخت سلیمانی دی          عجب لطف یزدانی دی
زیب زینت دی شاه د علم          سیال یې نشته څوک په حلم
پر میدان د جنګ هم شیر دی          د اعداء په حق شمشیر دی
صا عقه ده د قهر          ورانوي د د ښمن ښهر
پښتانه ور باندې ښاد شوه          له همه غمه ازاد شوه
شهزاده د علم کان دی          نن رونق د درست جهان دی
د دولت یې زه دعا کړم          د بخت خواست یې تل له خدا کړم
خوا مکا نه د بقا وینه          دا آفتاب دې خدای لر ینه
چې عالم په ده روښن دی          تمام ملك په ده ګلشن دی

مګر ماچې د معرفة الافغانی چاپي نسخه وکتله هلته دغه بیتو نه د څلرم باب په شروع کې لیکلي وو او د کتاب شروع په دغو بیتو سوې وه:

راسه تل د حق ثنا کړه          په ثنا ژبه ګویا کړه
دا ثنا په زړه کې نهال که          په سایه یې ځنك بال که
که په دې ثنا مشغول شې          په دوه کونه به مقبول شې
که ځپل ورد یې په اخلاص کړې          له محنته به ځان خلاص کړې
دغه ورد د زړه سراج دی          د همه ظلمت علاج دی
نفس مه کاږه بې ذکره          زړه خالي مکړه له فکره
د دنیاچې څه بهبود دی
عاقبت همه نابود دی

د پیر محمد کاکړ دریم اثر «د پښتنو تاریخ» دی چې وېل کیږي د لوی احمد شاه بابا په امر یې په پښتو ژبه کښلی ؤ. محترم فاضل عبدالروف بېنوا د ملا پیر محمد کاکړ د دیوان په مقدمه کې لیکلي دي:

«د دغه کتاب کومه نسخه د امیر عبدالرحمان خان په دربار کې موجوده وه او بیا ملا محمد خان افغاني نو یس ته ور کړه شوې وه مګر دا نسخه تر ۱۳۰۰ اش کال وروسته له کابله خارج ته وتلې ده او اوس یې درك نه لرو » (۹)

د ملا پیر محمد کاکړ د زوکړې نیټه د فاضل استاد پوهاند عبدالحی له خوا په اټکلي توګه د ۱۱۲۰ ه ق کال حدود ټاکل سوې دي او دده دغه اټکل نورو لیکوالو لکه- فاضل بېنوا، جعفر اخکزی، رضا همداني، ډاکتر کوثر او سلطان محمد پنی هم پخپلوا ثارو کې اخیستې دي. (۱۰)

د ملا پیر محمد د مړینې وخت فاضل بېنوا د ۱۱۹۶ او ۱۲۰۳ ه ق کلو تر منځ ښودلی دی ده د پیر محمد کاکړ د دیوان په مقدمه کې کښلي دي:

(۹)(۱۰) وګورئ: د پیر محمد کاکړ دیوان ۱۵ مخ- بلوچستان میں فارسی شاعری ۴۶ مخ- هماری جدو جهد ۲۷ مخ- د کوټې چاپ ۰ اد بیات سرحد لومړی ټوك ۳۴۴ مخ- د پېښور وندر ۸۹ مخ د کوټې چاپ ۱۹۵۹ ع

«د ملا پیر محمد ژوند تر ۱۱۹۶ ه ق پوری یقینی دی ځکه چې ده خپل دیوان په دغه کال تمام کړی دی ۰۰ او تر ۱۲۰۴ ه ق کال د مخه وفات شوی دی ځکه چې په دغه کال د ده شاګرد ابراهیم خان کاکړ د ده دیوان نقل کړی دی او پخپله خاتمه کی پیر محمد په داسی صیغه یادوی چې د پیر محمد مرګ ځنی ثابتیږی.»

زه د نوموړی ابراهیم خان له خوا د پیر محمد کاکړ په نقل سوی دیوان کی دا ستنساخ نیټه له دې امله د بیا فکر کولو وړ بولم چې دلوی احمدشاه با بادلمسی شاه محمود سدوزی

(۱۲۱۶-۱۲۱۹ ه ق) په یوه فرمان کی (چې د ۱۲۱۶ ه ق کال دلومړی خور په میاشت کی کښل سوی دی) د پیر محمد کاکړ نوم د کندهار د ژوندیو ملا یانو په ډله کی ثبت دی، په دغه فرمان کی داسی کښلی دی:

«حکم همایون شد آنکه فضیلت و کمالات پناهان ملاخدا بخش، ملا باشی و ملا نصر الله امین محکمه احمدشاهی و ملا الیاس و ملا پیر محمد کاکری و ملا دوست محمد تر ینی وغیره

علمای اشرف البلاد احمدشاهی بالطاف شاهانه سر فراز ګشته بدانند... هر یک مواجب وجیره مقرری دارند...» (۱۱)

### اختر شیرانی څوک دی؟

دا ردوژبی هغه پیاوړی شاعر چې د پیر محمد کاکړ غو پښتو بیتونه یی په اردو ژبه نظم کړی دی، سپیڅلی پښتون بناغلی اختر شیرانی دی چې په اردو ادب کی یی د رومانی شاعرۍ خالق بولی (۱۲)

شیرانی په سړ بنو پښتنو کی یوه پښه ده چې د کسی غره (کوه سلیمان) په لمنو کی اوسی او اوس ځانونه په غر غښتیو ګڼوی. د کسی غره د شیرانیو پښتنو څو کوره هندوستان ته ولیږد یدل او د مارواړ په جود هپور کی میشته سول. ددوی کلی ته به ماروا ړ یو (شیرانیون کی دهاتی) ویل.

د جود هپور له اوسیدونکو شیرانیو څخه یو سړی چې حاجی جاند خان نومید د سالارزی وزیر الدوله وزیر محمد خان (۱۲۵۰-۱۲۸۱ ه ق) د نوابۍ په زمانه کی

ټونک ته ولاړ ټونک د شمالی هندوستان په زړه کی یو اباد ریاست و چې له ۱۲۲۱ ه ق کال راهیسی یی اداره د سالارزیو پښتنو نوابانو په لاس کی وه او د نواب امیر خان

امیر الدوله «۱۲۲۱-۱۲۵۰ ه ق» او دده د زوی نوموړی نواب وزیر الدوله وزیر محمد خان په زیار او پیر زوینه د جنت مثال ګر زیدلی و په تیره بیاد پښتنو له پاره چې د

وا کمن نواب سره په وینه شریک وو د ژوند ډیری هوسایۍ او د تر قیو زیات امکانات

[redacted]

---

(۱۱) آریانا مجله ۳۶۵ ګڼه ۳۳۱ مخ - (وګوری د مشهور خطاط بناغلی عزیز الدین پوپلزی تاریخ خر قه معظمه)

(۱۲) وګوری د آج کل مجلی د ۱۹۶۱ ع کال داګست ګڼه ۲۷ مخ - د ډهلی چاپ.

میسر کیدل.

حاجی جاند خان هم له دغو امکاناتو څخه دکتې اخیستلو فکر په ټوټنګ کې میشت کړ. زوی یې محمد اسماعیل خان په ټوټنګ کې خپل تحصیلات بشپړ کړل او د نواب صاحب د سر منشي مرستیال وټاکه سو.

د محمد اسماعیل خان (۱۳۲۴ ه ق مړ) زوی مشهور محقق د پنجاب پوهنتون پروفیسر حافظ محمود خان شیرانی (۱۲۹۸- ۱۳۶۵ ه ق) دی چې په اردو ژبه او ادب کې د محققینو د فهرست لومړیو کړښو کې ځای نیسي (۱۳) ده د مخطوطاتو کتابخانه چې د کتابو شمیر یې ۳۵۰۰ ته رسیږی د ډیرو محققینو له پاره د فیض چینه ده.

او مؤلفات یې په اردو او پارسي ادب کې دلویو استاذانو له پاره د تحقیق دلاری مشال دی په اردو ژبه کې دروماني شاعری خالق اختر شیرانی د دغه مشهور محقق پروفیسر محمود خان مشر زوی دی، داختر شیرانی نوم محمد داؤد دی. داؤد خان د ۱۳۲۴ ه ق کال د کوچنی اختر په شلورمه ورځ (۹ ستمبر ۱۹۴۸ ع) په لاهور کی مړ سوی دی.

ده مؤلفات دا دی:

الف - نظم.

۱- پهولون کی ګیست: په ۱۳۵۵ ه ق، ۱۹۳۶ ع کال د لاهور دارالاشاعت پنجاب چاپ کړی دی.

۲- نغمهٔ حرم: په ۱۳۵۸ ه ق، ۱۹۳۹ ع کال د لاهور مکتبهٔ اردو چاپ کړی دی.

۳- صبح بهار: په ۱۳۶۴ ه ق، ۱۹۴۵ ع کال د لاهور کتاب منزل چاپ کړی دی.

۴- اختر ستان: په ۱۳۶۵ ه ق، ۱۹۴۶ ع کال د لاهور کتاب منزل چاپ کړی دی.

۵- لاله طور: په ۱۳۶۶ ه ق، ۱۹۴۷ ع کال د لاهور کتاب منزل چاپ کړی دی

۶- طیور آواره: د غزلو، ګیسو او رباعیګانو مجموعه ده په ۱۳۶۵ ه ق کال، ۱۹۴۶ ع کال د لاهور کتاب منزل چاپ کړې ده.

۷- شهرود: د غزلو او نظمونو دغه مجموعه د اختر شیرانی تر مرګه وروسته په ۱۳۶۸ ه ق - ۱۹۴۹ کال د لاهور اداره ادبیات چاپ کړې ده.

۸- شهناز: دا هم د اختر شیرانی د غزلو او نظمو یوه بله مجموعه ده.

په وروستیو کلو کی د اختر شیرانی د زیاتر و اشعارو مجموعه د کلیات اختر شیرانی حصهٔ اول په نامه د ډهلی په محبوب المطابع کی چاپ او خپره سوې ده - دغه مجموعه ۶۴۸ مخه لری او پراو و برخو ویشلی ده.

ب- نثر:

۱- ضحاک: د یوې ترکی ډرامی ترجمه ده په ۱۳۴۹ ه ق، ۱۹۳۰ ع کال بهخپره سوې وې.

۲- دهړکتی دل: دا فسانو مجموعه ده څینی افسانی د اختر شیرانی دی او څینی ترجمه په ۱۳۶۵ ه ق، ۱۹۴۶ ع کال د لاهور کتاب منزل خپره کړې ده

۳- آئینه خانی مین: په دغه مجموعه کی پنځه افسانی راغلی دی په ۱۳۵۵ ه ق، ۱۹۳۶ ع کال د لاهور فلمستان خپره کړې ده.

---

(۱۳) وګورئ: فهرست مخطوطات شیرانی - ډاکتر محمد بشیر حسین تألیف د پنجاب د پوهنتون چاپ ۱۳۸۸ ه ق کال.

۴-جوامع الحکایات ولوامع الروایات: دمحمد العوفي دکتاب اردو ترجمه اولنډیزدی چې په دوو ټوکو کې په ۱۳۶۲ هق، ۱۹۴۳ ع کال دډهلي انجمن ترقي اردو خپور کړی دی - لومړی ټوک یې ۲۳۰ - اودوهم ټوک یې ۳۳۱ مخه لري.

۵-اختر وسلمی کی خطوط: دغه مجموعه حسین بټالوي په ۱۳۷۶ هق-۱۹۵۷ ع کال خپره کړې ده.

داردو ژبې مشهور پښتون شاعر اختر شیراني که څه هم د پښتو نخواله پاکې خاورې څخه لیرې زوکړی اولوی سوی دی، مګر دده وینه نګه (خالصه) پښتنې وینه ده او موږ وینو چې دده په اشعارو کې د پښتنوالي جذبې ځپې وهي د «عاشقانه موت» تر عنوان لاندې دده یو شعر چې د ۱۳۰۸ ش کال په لومړیو میاشتو کې یې ویلی دی دده افغاني احساس ښه ښکاروندوی دی. ددغه شعر څو بیتې چې ځان ته خطاب کوي دادي:

خون افغاني تیری رګ رګ مین طوفان خیز هی
جوش قومي تیری دل مین ولوله انګیز هی

جذبهٔ غیرت تیری سینی مین آتش ریز هی
تیرا تیغه صاف وروشن تیرا خنجر تیز هی

هی تیری توسن کی هی برق آشنا رفتار چل!
عاشقانه موت مرنا هی، توچل قندهار چل!

سر فروشي کی ادائین کر رهی هین تجهه کو یاد
ارض کابل کی فضائین کر رهی هین تجهه کو یاد
باغ ملت کی هوائین کر رهی هین تجهه کو یاد

اپنی بزرګون کی صدائین کر رهی هین تجهه کو یاد
موت کی وادی مین کر، اسلاف کا یدار چل!
عاشقانه موت مرنا هی، توچل قندهار چل!

(کلیات اختر شیراني حصه اول ۱۱۶ مخ)

دغه د پښتنوالي غښتلي هڅه وه چې له پښتو نخوا څخه لیرې لویدلی او له خپلې ملي ژبې (پښتو) سره نااشنا شاعر (اختر شیراني) یې د کندهار دخوشنوا بلبل پیر محمد کاکړ دغو څو بیتو ترجمې ته اړ یوست:

ماله یاره سپینه خوله په خندا غوښته
دې له نازه دغوټۍ په دود ونغښته

محبوبا پر بستر واوښته له خوا به
که هوسۍ وه د بهار پر ګلو رغښته

سپین مړوند د دلربا که مې سر و یږدسی
سر به هسک نه کړم د وصل له بالښته

(د پیر محمد کاکړ دیوان ۷۴ مخ)

دملا پیر محمد کاکړ ددغو بیتو منظومه اردو ترجمه چې د (لالهٔ طور) په پای کې د (افکار پشتو) تر عنوان لاندې داختر شیراني له خوا خپره سوې ده دادہ:

جب التجای بوسه کی — محبوب بهٔ طنازسی
ابریشمین لب هو گئی — چسپیده باهم نازسی
جیسی کوئی نازك کلی
نازان مگر محجوب هو

محبوب بهٔ شیرین ادا — بستر په یوں خوابیده هی
جیسی غزال نازنین — مدهوش وآرامیده هی
پهولون کی نازك سیج پر
جو روح کو مرغوب هو

گر میرا تکیه بن سکین — وه بازوی سیمین کبهی
سر کوا ٹهاؤں مین نه پهر — ای خاطر غمگین کبهی
اس حال مین کیا، ره گیا
تاحشر جو مطلوب هو

(کلیات اختر شیرانی ۲۸۰ مخ)



# بې وفا اشنايان

نن مې بيا نيمګښه سترګې د جانان دي
تکې سرې لکه سور ګل د ارغوان دي
په غمزو باندې ئې زما زړګی سوری کی
په باڼو خپل ئې پېيلي عاشقان دي

چې د جانان سترګې په څېر د ارغوان سوې
پر را جمع د باڼو ټول بلبلان دي
سپين غاښونه لکه سپينې زرګه وريجې
زرګه ژبه، سرګه اوريه، سره ئې شونډان دي

سپينه زنه ئې کټ مټ لکه مڼه ده
شينکی خال ئې شرمنده د بڼ توتيان دي
هر باڼو ئې لکه غشي خطا نه ځي
سر تر نوکه هسې ښخ زما په ځان دي

توري څڼې ئې اوول پر مخ پرتې دي
پر ورتلای نه مې فقط تور ښاماران دي
سم قامت د يار عيناً لکه وريښته دي
نيغې ونې ته يې ټول عالم حيران دي

يار زما نن يکا نه دی په جهان کې
د حرم ښکلي يې ټول له شاګردان دي
لاس مې نه رسي وصلت د جانان ګران دي
خدايه څه وکم تر منځ مو غمازان دي

چې دا ښکلي کاته نه کا مغرور ګرزي
دا په دا چې د ښه حسن خښتنان دي
مينانو لره خوب و خند انسته
دمين په غم کې ډوب ستړي ستومان دي

مينان تل بند په زړ پل د خپل مين دي
مينان مدام په وير د خپل جانان دي
معشوقان چې کله «هو» کي، کله «يه» کي
په دې چم يې تير ايستلي عاشقان دي

«نوري» نوره مينه مه کوه د ښکلو
نن ئې اشنايان ټول بې وفايان دي

محمد ګل «نوري»



# ابدیت

دادی په دې تروږمې کې ستا کور ته راغلم
او دربېغ مې کړه. ستا د کور څنګېر مې

وشر نګاوه خو هیڅ جواب رانکړ.
ډېر وځنډیدم، مګر ستا یدن مې په برخه

نه سو. دادی اوس بېر ته نا امیده ځم او دا
لیکک تا ته پریږدم؛ څو پوه سې چې زه

راغلی وم.
دادی زه بېر ته پر خپله تره ولاړم او

هغه لارمې په خوله ور کړه چې هیڅ
انتها نه لري.

« ټاګور »



# شام وسحر

نما یان را ته یو مخ شام وسحر دی
هیڅ خبر نه یم چې شمس دی یا قمر دی
هیڅ برش ئې عریان تیغ له لاسه نه کا
چې په طور د هلال سایه پرور دی

چې خالي نه یې یو دم له قربانیه
هر زمان د تا په کور باندې اختر دی
په اثر ئې نښول پوه د سنګ رګو نه
ورغلي چې د غره په لاس نشتر دی

چې بیا نه موند هیڅ شانې له بار کیه
عجب مو په دا دوران ددې کمر دی
د پتنګ په شان د هسې صیاد ښکار یم
چې دا نه مې د ګدام سوزان شرر دی

سر مې کوز دی د آسمان بلند همت ته
چې ئې ولي یې هر چا ته خپل ساغر دی
راغي جنګ د محتسب پر مې خوارانو
نن ئې بیا شب مهتاب د تیغ سپر دی

دا فتاب چشمه ئې مخ، شعاعي خط ئې
زاشه ګوره نوشته په آب زر دی
باریکي ئې ده تر موی دلاري زیاته
چې «شیدا» د ګلرخسار په طلب سر دی

کاظم خان «شیدا»

# دیار غم

هسې یم د یار له غمه په ضرور
لکه سوی اور لړوني د تنور
چې هرګز له اوښو، وینو نه وچیږي
معلومیږي چې مې سترګې سوي ناسور

حمید «مومند»

## دګل قیمت

هغه راغله زما وځنګ ته په میله کې
ما یو ښکلي ګل ور وړو م په سینه کې
سره شوندان یې را نژدې کړه زما خولې ته
د یو ګل قیمت ئې راکړ په بوسه کې

علي، م «رسولي»

## د محفل انجام

شپه ولاړه پر آخر سوه يو ساعت باقي
ما او يار ته تمام نکړ حکايت باقي
ساقي دی که پياله ده که بوسه وکناره ده
کل واړه مهيا دي عنايت باقي

مطرب که غزل خوان دی داوايي په مجلس کي
دا ئم دی خدای پر تالري صحبت باقي
څو عيش دد نيا شته، مجلس پر آخر کيږي
بيا حکم کړه پر ماکه وی خدمت باقي
بيروتلاس د کرم کړه هم ښاد هم مي خرم کړه
پاتيږي په دنيا کي سخاوت باقي
مجرا زمو بخدمت کړه خوشاله موخصت کړه
راوليږه وکور ته د خلعت باقي

مطلب يي يادګاری ده چي غزل پر ديوان کاږي
فاني به «شمس الدين» سی کتابت باقي
شمس الدين «کاکړ»

## هنــــر او ادب

## آزاد جهان

هلته چي ژړونه له بيري په امان دي او سرونه هر ځای ته هسکيد لای شي، چيري چي علم او فکر آزاد دي چيري چي کلمات د حقيقت اور استي له کومي څخه راوځي، چيري چي بي نتيجي کوښښونه لاس غزوي او مطلب ته رسيږي، هلته چي د کار او عمل لاسونه دي تړلي، هلته چي د استدلال دچيني روڼي او به د عنعناتو وچ ځنګله ته لاره نه لري. هلته چي ذهنونه

او دماغونه نشو نما کوی.

اې خدايه! ته ما په دغسي فرد وسي او آزاد جهان کښي له خوبه راو يښ کړه.

## داوښکو امیلونه

د مینی په څپو کي سلامونه درليږم
د مات زړه ګي دردونه پيغامونه درليږم
د تن غوښي سوی و يلي اوس به خود له غمه مر مه
وړو، وړو سکلو سره آهونه درليږم

د آه او اوسيلو سره د استا د زړه تسل ته
د سوی زړه ګي ځړيکي، ګذارونه درليږم
جنون کي چي بيلتون ره به بر خه مي ژدا سوه
تحفه د نرمو اوښکو اميلونه درليږم

د زړه وړو کاسو ته مي ورووينی څڅيږي
د سوز سره د وينو ډک جامونه درليږم
په پاکه مينه زه ننګيالی تا ته نازولی
کنړي، کتري د زړه څه سوغاتونه در ليږم

«ننګيالی»

## خوښ يم

زه د يار په دردو غم لړلی خوښ يم
د دلبر په زلفو غبرګ تړلی خوښ يم

محبت مي دی مينه لي په ژړا کي
د بلبل په شان پر ګل ژړلی خوښ يم

چي صفت زما د يار پکښي کي نه وی
د هغه مجلس څخه زه شړلی خوښ يم

د شهباز په شاني خوښ په هوا نه يم
د دلبري په ځنګل کښي مړی خوښ يم

زه د يار د تورو زلفو ديدن غواړم
ځکه ندن کښي خپل دلبر دم کړی خوښ يم

په ژړا کي مي موندلي خوشالي ده
زه د اوښکو په سيلاب کي وړی خوښ يم

زه پښتون «عبدالمنان» هميشه وا يم
تل په درددعاشقۍ کښي ستړی خوښ يم
«عبدالمنان»



تهیه کوونکی: میرمن ملاله

# د کوچنیانو د بین المللی ورځی هدف د کوچنیانو سالمه روزنه ده

دوبی ته مه چی د کوچنیانو د بین المللی ورځی سره مصادفه وه د کوچنیا د بین المللی ورځی شپږ ویشتمه کالیزه وه.

دا ورځ د افغانستان د جمهوری دولت په شمول د نړۍ په ټولو غړو هیوادو کی د یوې ممتازی ورځی په حیث په بین المللی سویه و لمانځل سوه.

د کوچنیانو د بین المللی ورځی د لمانځنی څخه مقصد او غایه دا ده چی د دغه معصوم مخلوق تربیه، روحی او جسمی وده، خوراك، څښاك او پوښاك په سالمه توګه صورت و مومی.

د کوچنیانو سالمه تربیه، روزنه او ښوونه په تیره بیا اوس اوس چی په هیواد کی د جمهوری عالی نظام بنیاد اېښوول سوی دی، زیات پاملرنه ایجابوی. یعنی د سبا ورځی ځوان نسل باید داسی وروزل سی چی جسماً او روحاً د افغانی ټولنی د خدمت د پاره تیار او د اجتماعی اخلاقو څخه برخوداره وی.

هیوادا او ټولنه خپل فامیل او کورنۍ تلقی کړی او د هغو خدمت خپل د ځان خدمت و بولی.

کوچنیان یا د سبا ورځی نیرومند نسل باید د جمهوری نظام د ارزښتو په رڼا کی بشر دوسته او نوع پالونکی تربیه سی، ملی او معنوی مقدساتو ته احترام ولری د عصر او زمان د مقتضیاتو سره سم د ټولنی د پرمختګ د پاره د یوه نوی جهان د جوړیدو توان، طاقت او ابتکار په ځان کی ولری.

له دی امله د کوچنیانو د روزنی په هکله د والدینو مسئولیت ډیر سنګین او دروند دی. والدین باید د اولاد په روزنه کی د ښځې خوا پاکی مراعات وکړی برعلاوه باید و پوهیږی چی د کوچنیانو احساسات ډیر لطیف او نازك او په جزوی حرکت جریحه داره کیږی. ځکه نو باید د دوی سره په ډیره نرمی او صمیمیت راشه درشه وسی.

کوچنیانو ته باید د عقیدې د اظهار

(پاته په ۲۹ مخ کی)

دم. ژ باهه

# د کور نیوچارو په تنظیم کې د ښځې رول

داوسنی عصر مېړمنې ډېرې عمده او اساسي وظیفې پر غاړه لري د مثال په ډول: ډاکټري، قانون داني، آرټیسټي او دغه رنګه نور سیاسي او اجتماعي امور.

خو د مخنیو ښځو فقط یوه وظیفه لرل او هغه د کور نیوچارو سامبالېدل وه او بس. حال دا چې ننني مېرمنې علاوه په کور نیو چارو نورې اساسي وظیفې هم پر غاړه لري چې یوه د هغو څخه د کور د نیه بودجې سنجول او د هغه مطابق د مصرف د پاره پروګرام طرح کول دي.

د دې وظیفې تنظیم چې د ښځې وظیفه ده، باید مېرمن په نظر کې ولري چې د رآمد د مصرف سره برابر دي او که تر هغه لږ او باید په مصرف کې څه ډول سپما وسي. څو نه یې غذا او څو نه یې د کور نور احتیاجات ته وټاکل سي.

دغه رنګه موږ باید د غذا په هکله اساسي فکر وکړو چې څرنګه په لږ مصرف خوند وره په عین حال کې د بدن د ضروریاتو د رفع کولو د پاره مفیده غذا تهیه کړو؛ د مثال په ډول که چېرې اقتصادي وضع د غوښو رانیول نسي ایجابولای، کولای سو چې د لوبیا څخه خوندور خواړه تهیه کړو، یا که چېرې هګۍ په کور کې لږوي او د کورنۍ کفایت نه کوي نو د پیازو او رومیانو په ز یا توالي سره کمیت او کیفیت ورز یا تولای سو.

یوه د کور مېرمن باید اټکل وکړای سي چې څو نه غذا د څو نه وخت د پاره کفایت کوي او د اټکل له مخې باید د کور ټول پلان جوړ کې. دغه پلان په ډېر لږ وخت کې جوړ ېدای سي کله چې پلان جوړ سي بیا نو د کور په چارو کې هیڅ مشکلات نه راځي. برعکس که یوه مېرمن بې نقشې او پلانه د کور چارې مخ ته بیایي نو حتماً د زیاتو مشکلاتو سره مخامخ کېږي.

د کور د اشپزخانې او پخلي د وسایلو برابرول یو مهم کار دی. دا مشکله ده چې ټول ضروري شیان په یوه وار تهیه کړو نو هغه شیانو ته چې زیات ضرورت لرو باید په کراره کراره تهیه سي. په میاشت کې یو وار خپله اشپزخانه چک او پولست یې ترتیب کړو څکه څینې اوقات د یو شي پیدا کول موږ بې ځایه سرګردانه کړي. حال دا چې هغه شی ورک نه وي او موږ یې ورک بولو. مګر د بې نظمۍ او ګډوډۍ په اساس ورک وي.

درنو مېرمنو! خواړه پاکي او نظم و نسق که د یوې خوا تاسي باسلیقه معرفي کوي د بلې خوا ستاسي سرګرداني او روحي تشویش لېری کوي. څکه نو باید د کور چارو ته جدي پاملرنه وسي.

## د ښځې په هکله

ښځه د طبیعت شاهکاره ده.

(اسمایلز)

د ښځې په پیدا ېښت د نړۍ ښکلا بشپړه سوه

(شکسپیر)

د اقتراح په لړ کې: له کابل څخه [redacted] ا،م «کرزی»

# ادب نن ادیب ته څه امر کوی؟

ښاغلی طالبه!

کندهار پر له پسې دارسیږی ستاله دې یادونی او پیر زوینی څخه ډېره له کومی مننه کوم کوردې ووډان.

زمونږ یوه ډېره هیله دا وه چې تاسو ځلمیان د علم او پوهې په وسیله سامبال شئ او خپل هیواد ته د قلم، ژبې او نورو انسانی صلاحیتونو په مرسته د خدمت مصدر وګرځئ.

دا چې نن مونږ په نسبی توګه خپله ارزو سر ته رسیدلې بولو په ډېرو نو کې د خوښۍ احساس کوو او په دا یوه خبره ځان ډېر پړ بولم چې ما ستاسو په دې ادبی او علمی چوپړ کې هیڅ برخه اخیستې نه ده او که زما نور یاران هم را څخه خوابدی نه شی نو دا ګیله دوی ته هم ګوری. په میاشت کې د یو لیکوال د پاره چې د لیکلو ښېړواک هم لری د یو مضمون برابرول څه ګران کار نه دی.

خو زمونږ تر ټولو اوروزنه دغه راغلی ده چې د خپل علمی او قلمی قدرت څخه باید ډېره لږ استفاده وکړو.

زمونږ د ژوند لویه برخه په ورځنی بحث او جدل کې تیر یږی چې یاران ور ته (ګرداو)

وایی کشکی دا دې (ګرداو) ورځنی محتویات او خبرونی راټول لیدلای او په کندهار کې خپر یدلای چې د یوې خوا به زمونږ د پوهانو د وینا او انرژی بی ځایه نه تله او د بلې خوا به زمونږ د عصر د فکر او ثقافت څرنګوالی هم وراتلونکی نسلونو ته د یوې بی بها سرمایې په توګه پاتی کیدلای. کومی علمی پانګی چې نن زمونږ د عصر په لاس کې دی دغه ټول د پخوانیو پوهانو او ادیبانو د زیار او زحمت محصول دی.

مونږ که نن په خپلو علمی او تخنیکی اختراعاتو ویاړو او یاد هغه په ستورو کې خپله سبانی مینه جوړول غواړو، په دغه ټولو نهضتونو او الوتونو کې د پرونیو عالمانو او لیکوالو لویه برخه شته، ځکه مونږ عقیده لرو چې نړۍ د تکامل په لوری روانه ده او په هره ټاکلی تاریخی دوره کې مبتکرو او مفکر و دماغو د خپلو اجتماعی او اقتصادی مناسباتو په رڼا کې د خلکو په ګټه ډېر څه لیکلی دی او هم ډېر څه ویلی دی.

همدغه د علم او ادب را پاتی خزانی دی چې مونږ خپلی تجربی او زیارونه هم پر هغه زیاته کړې او د مطلب پر او ته روان یو...

راغلو دې ټکی ته چې استاد ژواک په ریږدیدلو ګوتو قلم را پورته کړی دی او په سپینه ږیره غواړی چې ځلمیان ئی تر لکړه و نیسی، له فردی شعور څخه ئی د اجتماعی اصلاحات وغوښتنې ته و خیژوی او هلته د خپل ځلمیتوب د نیمګړی ارمانو نور تکینه د نیا په عینی توګه وویني

ښاغلی ژواک د ژوند په رمز او فلسفه ښه پوه شوی دی چې ځوان قدرتونه د ډېرو ځای نیسی نو ځکه په ډېره کی د ځوانانو سره لیوونی مینه لری لکه یو شاعر چې وایی:

می باجوانان خوردنم خاطر تمنا میکند    تا کودکان از پی فتدا ین پیر درد آشام را

زموږدا (دردآشام) (پیر) نه پوهیږم د (روه) په کلی کی د ترنګ د کوم ټاپی یو ژوند ځپی نکی جام څښلی دی یا ئی د (روه) له تاکستان چی (یارب مباد تا به قیامت خراب طارم تاک)

د کوم شفیو خانی وا ښکی او به ښځېلی دی چی «اتشی که نمیر دهیشه دردل اوست»

دا د عشق او مینی په اوړسوی فلسفی چی د زلمیانو په فکرونو کی نوی ولولی را پاڅول غواړی او په خپل عارفانه تجاهل سره له دوی څخه تمنا کوی چی خپل «پیر» د ځوان قوت په برکت د پړاو وهلو ټاټوبی ته ورسوی کوم چی ده په خپل معنوی سیر له مودو را هیسی دهغه په افاق او انفس کی دیو ګرزنده سیلانی په شان طوافونه کړی دی.

ربښتیا چی د پښتون ملت بابا خوشحال خان ښه ویلی دی:

که خوشحال په عمر ولاړ تر اویا تیر شو — لا په زړه کی ئی د ښکلو اشنائی ده

یا:

چی په عشق سره ژوندی وی هغه نه مری — چی بی عشقه ژوندی ګرزی مړ هغه

استاد ژواک له زلمیو لیکوالو څخه هیله کوی چی په دې اقتراح کی برخه واخلی چی «ادب ئی ادیب ته څه امر کوی»

زه وایم چی ادب پخوا څه امر کاوه؟ زموږ پخوانیو ادیبانو موږ ته څه راښوولی وه او موږ ته ئی څه لیکلی وه؟

زموږ اخبارونه، مجلی، کتابونه په څه راز ادب ښکلی شوی دی هلته څه ډول بحثونه منځ ته راغلی دی؟

د کومو فلسفی ښوونځیو په لور د زلمیانو لارښوونه شوې ده.

زه فکر کوم چی په دې وروستیو شلو کلو کی موږ د ژوند پر هره برخه ادبی لیکنی کړی دی. دادبغایه او مقصد څیړل شوی دی اوسم ور سره دادیب وظیفی هم ټاکل شوی دی دا چی بیا زموږ «پیر» له نوی سره دادب او ننیو لیکوالو څخه د ویلو هیله څرګنده کړې ده، په ډېره مینه باید د دې هیلی مخاوی وشی

زه نه پوهیږم چی ځوان یم او که زوړ، د نوی فکر خاوند یم که د زاړه خو دومره پوهیږم چی د زلمیتوب څومست پسرلی می ستاسو په ښار او کلی له ارمانجنو خاطرو سره تیر کړی دی نو اوس د رحمان بابا په قول:

که می څوک په فقری شمیری فقیر یم ) ( که می څوک په امیری شمیری امیر یم

نو د لومړی ځل د پاره به زه خپل نیمګړی قلم را پورته کړم او د پورتنی اقتراح په باب به څه ولیکم ځکه «یک عمر میتوان سخن از زلف یار ګفت»

وروسته به بیا زلمی لیکوال د استاد د غوښتنی سره سم په دې په زړه پوری موضوع کی برخه واخلی دا دی زه په خپل اصلی مطلب پیل کوم.

په دې کی شک نشته چی ادب د بشری ژوند ایینداره ده. په دې ایینداره کی د ملتونو د ماضی او حال ټولی خوږی او ترخی پیښی په خپل واقعی بڼه سره لیدل کیدای شی.

دا هم منلی خبره ده چی انسانی ژوند تل د تغیر او بدلون په حال کی دی ټولنی له یوه

حال څخه و بل حال ته اوړي او هر عصر د خپل ځان سره بیلې غوښتنې او اړتیاوې راوړي
په دې اوښتلو کې څرنګه چې د مادي ژوند ټول اړخونه تغیر مومي نو ځکه ورسره فکر، معنوي جهان، ثقافت او ادبیات هم سمدم تبدیلیږي. دا تغیر او تبدیل د نړۍ د ټولو ملتونو څرګنده ممیزه ده.
د پښتو پر ژبه او ادبیاتو هم د دې تحول رازرازدورې راغلې او تیرې شوې دي. یو وخت چې پر پښتني جامعې مذهب تسلط موندلی دی نو ادبیاتو هم مذهبي رنګ اخیستی دی او بیا کله چې پر پښتني نړۍ د پردیو حکومت غالب شوی او د دوی ملي نظام یې ړنګ کړی دی، نو بیا د پردیو اشغالګرانو په ضد په یوه اتفاق سره مبارزه شروع شوې ده. په دې وخت کې ادبیاتو هم حماسي رنګ موندلی دی هر شاعر او لیکوال که څه هم د فکري اسلوب او مشرب له مخې د مبارزې میدان ته یې نه وي ور دانګلي خو د خپل محیط څخه په الهام اخیستلو ناچاره شوي او څه یې خامخا ویلي دي؛ لکه رحمان بابا چې یو صوفي مشربه شاعر او عارف انسان ؤ خو بیا هم وایي:

په سبب د ظالمانو حاکمانو کور او ګور او پیښور درې واړه یو دي.

او حمید ماشوخیل چې د پښتو ژبې یو نازک خیال او مضمون افرین شاعر دی بیا هم د خپلو خلکو له حاله بې غمه پاتې کیدای نه شي او وایي:

یو به نه سم مغولو اله درقیب ستا    په رښتیا که زیږولی پښتنی وم

علیخان خو بیا بیخي د خیبر سنګر ورته نیسي کله چې وایي:

د کوڅې ګوټ به دې پریښږدي ورقیب ته    اپریدی شوم و مغل ته خیبر نیسم

بابا هوتک او خوشحال خان بابا خو نه یوازې دا چې د شعر او قلم په ژبه یې د خپل عصر ظالمانو او استعماري قوتونو غندل بلکه د توري په میدان هم ورګډ شول او د مغلي استعمار سره یې د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې نه ستړي کیدونکي مبارزې او جنګونه وکړل او په ادبیاتو کې یې هغه روح پوه کړ چې ترننه یې پښتون ولس د مبارزې او ملیت په ډګر کې ژوندی ساتلی دی.
دادبیاتو ستره وظیفه داده چې د هر عصر افکار د ولسونو د ژوند څرګندوالی رانقل کړي او راتلونکي نسلونه پرې خبر کړي.
موږ مخکې وویل چې د ولسونو د ملي ادب په ایینداره کې د ژوند ټول اړخونه انعکاس مومي او د هر عصر یادونې او خاطرې روښانه پکې ځلیږي.
کوم وخت چې پر پښتنو د لویدیځ استعمار چپاو راغی او د افغانستان وجود یې ټوټې ټوټې کړ نو د یو رند کرښې په نامه یې زموږ د هیواد یوه لویه برخه ځکه او ګڼ شمیر ولسونه را څخه جلا کړل. دوی د خپل استعماري سیاست د بقاء د پاره د اولسونه خوار او بې علمه ساتل خو د زمانې بهیر مخ په وړاندې روان ؤ. ملتونه را ویښیدل او د خپل مستقبل د پاره یې فکر او تدبیر کاوه څو د ځینو قام پرستانو په مرسته او مالي کومک سره د پښتونستان په سیمه کې قومي ښوونځي جوړ او زده کوونکو په زده کړه پیل وکړ.

په‌دې وخت کې استعمار چیانو دخپلو اجیرانو په‌وسیله‌دعلم او پوهنې پر ضد خپرونې شروع کړې خود پښتون خوار بچې د تعلیم او پوهنې په‌وسیله سامبال نه‌شې. دې مرتجعینو به په کلیو او بانډو کې داسې ویل:

سبق دمدرسې وایی، دپاره‌دپیسې وایی جنت کې بې ځای نه‌وی، دوزخ کې به‌غوپې وهی

په‌ رښتیا چې ادبیات دهر عصر دهرې ټولنې دفکر څرګندوالی اوډژوندانه‌ډول اوطرز موږ ته په څرګنده توګه‌راښيولی دی یعنې ارتقایی اوملی نهضتونه، ارتجاعی او

تیاره فکرونه دواړه ئې سمدم په‌ډیره امانت داری په‌خپل غیږکې خوندی ساتلی دی زموږ په‌اوسني عصر کې هـر ادبیاتـو ډول ډول کتنې او تبصرې کیږی.

ځینې پوهان ادب دژوند اوډهغه‌له‌کړاوونوڅخه تېریدو لی اوداسې استدلال کوی چې کله‌چې انسان داجتماعی ژوندڅخه او جنجال څخه ستړی‌او ستو مانه‌شي نو ادب اوشاعرې ته پناه وړی څو په‌دې رنګین جهان کې دخپلو نازولو خیالاتو سره‌دزړه

خواله‌وکړی. بله‌ډله پوهان ادب په‌لوی سر کی‌دمحرومو اولو یدلو انسانانو دفکر او تخیل محصول ګڼی اوداسې عقیده‌څرګندوی چې کله‌انسان په‌ژوند کې‌خپلی غوښتنې اوامیال مسلطو نه‌لیدل، نه ئې جنسي غرایز پرځای شول اونه ئې‌دجاه اومقام‌خوند

وکوت‌نو پخپل ذهن اودماغ کی ځانته دعیش‌اوعشرت باغ‌و بوستان اودښکلو محفل جوړوی دشکست خوړلو اومحرومو انسانانو دماتی‌اومحرومیت‌دماغی تخلیق ته‌ادب وایی‌لکه یوه پښتو لنډۍ‌چی‌وایی:

په‌اندیښنو می ځان پاچا کړ
سر می‌را پورته کړ ملنګ‌ددوهی ومه

خو یوه بله ډله پوهان ادب دبشری ژوند تفسیر او تعبیر ګڼی اووایی چې انسان

اجتماعی مخلوق‌دی‌نه په‌یوازی سر د ژوند اړ تیاوی برابر ولای‌شي اونه‌له اجتماع څخه‌وتلای‌ شي‌دی‌په‌اجتماع کی‌زیږیدلی‌دی او په‌اجتماع کـی بـه‌مری نو ځکه‌ددوه ټول افکار اوخیالات دخپل محیط اوچاپیریال څخه‌اخیستل شوی‌دی‌اودخپلی ټولنې

داقتصادی‌او تولیدی‌مناسباتو سره‌نه‌شلیدونکی ارتباط لری.
داډله‌عالمان داهم‌وائی چی‌دانسان فکر اوماغزه‌له‌عینی جهان‌څخه‌اقتباس کوی نوځکه‌یو لیکوال اوشاعر چی‌دخلکو په‌ټولنه کی لوی‌شوی‌اودخلکو اودخپلې جامعی

په‌کلتور متخلق شوی دی، باید‌دخلکو په‌ژبه‌دخلکو دپاره دخلکو څخه الهام واخلی نه‌داچی په‌جماعت کی‌ژوند کوه‌اودخلکو په‌مرسته اوکومک سره دژوندانه اړ تیاوی پوره کوه‌خو ادبی تخلیقات اوخوبی وینا‌وی‌دهغه چادپاره کوه کوم‌چی په لوړو

اوډنګو ماڼیو کی بې له کار اوزحمت څخه په‌مزو اوچړچو ورځی شپی سباکوی. زموږ دعصر په ادبیاتو کی همدا فاصل سرحداوویش دی‌چی ادبیات‌خو به خامخا دژوند تفسیر اوادیب به‌دژوندانه‌مفسروی.

لیکن د جامعې د کومې طبقې د ژوند تفسیر او تعبیر به کوي. د ډېرې (اکثریت)
او که د لږې (اقلیت) په یوه ټولنه کې هر ډول د انسانانو پورته او کښته طبقې موجودې
وي ځینې ظالمان او استثمارګران او لوی اکثریت خواران او زحمت کښان دي.

مدنیتونه او بشري شهکار صنعتونه به د همدې خوارې کښ په تیاکو او د تندې په خولو
جوړېږي خو ګټه او چړچې به یو څو کسه ځنې اخلي، ګلونه او سمسور باغونه به د دوی
په زیار او زحمت غوړېږي مګر د بوئیدو واك به ئې نه باغوان لري او نه مالیار.

دلته نو ادیب په خپل تاریخي رسالت لاس پورې کوي او ادب د خوارانو د ژوند
تفسیر ته استخداموي همدا ادب نو په رښتیا چې د ژوند تصویر ګڼل کېدای شي او هم تعبیر.
دا ډول ادیب حق لري چې ووایي ما خپل اجتماعي فرایض پر ځای کړي دي او کوم

پورې چې د ولس لخوا زما پر غاړه وو هغه مې بېرته د انساني شرافت په رڼا کې ولس ته
په ډېر سپېڅلتوب سپارلي دي.
اوس به بېرته خپلې وراشي ته راستانه شو چې ادب نن ادیب ته څه امر کوي زما په خیال

د ادب یوازنی امر او کلکه غوښتنه د خپلو یارانو څخه دا ده چې دوی باید همیشه
د واقعیت او د هغه د مظاهرو سره آشنا وي.
د خپل ولس تاریخي ټاکلې دوره وپېژني. د خلکو سره د خپل ارتباط مزی ټینګ

وساتي د خلکو په ژبه او کلتور ځان ښه پوه کړي بیا د خلکو د نیکمرغه ژوند د پاره په
مترقي ادبیاتو لاس پورې کړي.
دا حقیقت هم باید له یاده ونه باسو چې مترقي ادبیات پرمختللې ژبه غواړي. نو ځکه

ادب اوسني ادیب ته امر کوي چې لومړی باید خپله وروسته پاتې ژبه ژوندۍ کړي ولسي
کلتور وپالي د خلکو شفاهي ادب او روایات ټول او د لغاتو ذخیرې او اصطلاحات
را برسیره کړي. ځکه د هر ډول عالي او انساني ایډیال د څرګندولو او د هر راز افادې

د پاره لومړی بشپړه او معیاري ژبه په کار ده که فکر هر څومره خلاق او پر انسانیت مین وي
که د الفاظو ادا یې نه بې سیکه او باېزوې نو بیا هم په زړه پورې ادب منځ ته را تللای نه شي.
نن افغاني ټولنه غوره فکرونو، اغېزه ناك او ښایسته کلماتو ته سخته اړتیا لري

(ځکه نن سبا د ښایست او ښکلا ننداره په بېړه مخ پر غوړېدو دی کمیسونه لمنې ېږي نور په زلفو
او کاکل لوبی روانه دی) تر هغو چې د یوه ولس ژبه او لسانیات په کمي او کیفي لحاظ
پرمختګ ونه کړي ادیب د خپل زړه ارمانونه په رنګینو ډول او خوږه ژبه څرګندولای نه شي ځکه

هر مضمون د خپلې چهرې ( ښې ) سره نه شلېدونکې اړیکې لري.
نتیجه دا شوه چې ادب نن ادیب ته امر کوي چې لومړی د خلکو ژبه وپاله بیا د خلکو
د نیکمرغه او هوسا ژوند د پاره د مینې او محبت پیغامونه خپاره کړه او له هغه چارې ځان
ساته چې د خلکو د سخورتوب (سعادت) په لار کې خنډ ګرځي.
زموږ د عصر رښتینی ادیب به هغه څوك وي چې د خپل ولس اجتماعي ژوند په واقعي
ښه تصویر کړي او له حقیقت څخه مخ پر بل پلو وانه ړوي او په دې ترڅ کې وجهاني
لیږد ته د رسیدو په تمه خپل ولس تر لاس نیولی پر مخ روان وي.

«پاته په ۲۸ مخ کې»

سید حسام الدین «حسام»

# د ملي یووالي په تکامل کې د قضاوتونو اغیزه

په دغه پرمختللې نړۍ کې لکه څنګه چې ښکاره ده نړیوال یو په بل پسې د ساینس، تکنالوژۍ او نورو سترو انکشافاتو د برې

په برکت د خپلو ټولنو د اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او فرهنګي ژوندانه د پوره سمون او د خپلو خلکو د اعمالو، افکارو او

نظریاتو په نسبت د سالمو قضاوتونو د اساساتو او اصلونو په پیروي، د خپل هیواد او خپلې ټولنې د هراړخیزو شرایطو د ژور

تحلیل په رڼا کې تل پرمخ ځي. او داسې څوک ګامونه اخلي چې نه یوازې د خپلو خلکو دا برومند او مترقي ژوند د بقا

امکانات راغونډوي، بلکه لیدل کیږي چې د دغو مثبتو تحولاتو او پرله پسې پرمختګونو له برکته د تمدن او پرمختګ

له کاروان څخه د وروسته پاته هیوادو او ملتو په مادي او معنوي شرایطو کې د توجه وړ امکانات منځ ته راولي.

که موږ ښه ځیر شو واقعیتونه څرګندوي چې د پرمختللو هیوادو مترقي او نیکمرغه ژوند، نه په اصطلاح له اسمانه ور ته راکښته

شوی دی او نه ور ته د مځکې راز یږیدلی دی بلکه هغو ټولنو د خپلو خلکو د ګړې

فعالې همکارۍ او ملي ښو احساساتو په برکت د تکامل لارې چارې پیدا کړې او د هغو په تطبیق او عملي کولو کې ئې په

نه ستړې کیدونکې توګه د ملي یووالي په رڼا کښې د کار او فعالیت شپې سبا کړې او په دې لار کښې ئې زیاتې مادي او معنوي

قربانۍ او فدا کارۍ پرځانو منلې دي.

همدارنګه پرمختللو هیوادو که د یوې خوا د خپلو ملتو د تکامل په هیله په اجتماعي

سترو مسایلو کې د خلکو فعال او ویښ ګډون ته عملاً په درنه سترګه کتلي دي خو د بلې خوا ئې بیا د خپلو خلکو افکارو، نظریاتو

او اعمالو ته تل په سالم انتقادي نظر کتلي او د اجتماعي چارو په نسبت ئې سالم قضاوت خپل شعار ګرزولی دی او د دې عالي ستر

شعار په برکت ئې په خپلو ټولنو کې د سالمو قضاوتونو روحیه قوي کړې ده او د هغه په ملګرتیا ئې د خپلو ټولنو د تکامل او

پرمختګ رازونه ترلاسه کړي دي.

هو. د ټولنې د تکامل او پرمختګ په برخه کې هغه څه چې ډیره اغیزه لري، په

اجتماعي لحاظ تر ټولو مهمه د ټولنې د وګړو ترمنځ د نظریاتو، افکارو او

اعمالو په نسبت د قضاوتونو موضوع ده.
څرنګه په هره اندازه چې د یوه فکر او یوه
عمل او یا یوه شخص په نسبت قضاوت عمیق

وي او د ژورو تحقیقاتو پر نتیجو بناوي
په هغه اندازه ئې نتیجې مهمې او زیاتې
ګټورې وي.

نن چې د نیکه مرغه زموږ په هیواد
کې د جمهوریت عالي نظام استحکام
مومندلی او زموږ د ستر انقلابي ملي

رهبر ښاغلي محمد داؤد د نیکو ملي
هیلو د بریالي کیدو او تحقق په خاطر
د بې کفایته ظالم نظام توره شپه د

جمهوریت د ځلانده لمر په راختلو سره
د تل د پاره پای ته ورسیده او ورسره سم
په افغاني ټولنه کې د خلکو ترمنځ په

ملي اجتماعي چارو او وسایلو کښې
د فعال ګډون احساسات تر پخوا زیات
پیاوړي او ګران هیواد مود مادي

او معنوي سترو پرمختګونو د مثبت
تامین په لار کې ګام ایښی دی:
نو لازمه ده چې هر افغان په تیره بیا

ځوانان او پیغلې په هر مقام او هر ډول
شرایطو کې چې یو، د جمهوري نظام
د پرمختګ په لار کې په ځانو کښې د

جدیت، فعالیت، صداقت روحیه پیاوړې
کړو.
زموږ د ټولنې ټوله خلک په تیره بیا

ځوانان او پیغلې او د ځوانو افکارو
او ځوانو نظریاتو خاوندان باید په
اجتماعي او نورو سترو مسایلو کې حساس وي

او خپل مسئولیت درک کړي او د ملي
وحدت په هیله د ټولنې او خلکو ترمنځ

د نظریاتو افکارو او اعمالو په نسبت
همیشه د سالمو قضاوتونو پیروي خپل

شعار و ګرزوي او تل ئې کوښښ داوي
چې په عمومي توګه د خپل هممنوع او

په خاصه توګه د خپلو هیوادوالو د
نظریاتو، افکارو او اعمالو په مقابل
کې بې له تحقیق او بشپړې څیړنې څخه

کوم قضاوت و نه کړي. څرنګه هغه قضاوتونه
چې په اجتماعي لحاظ پر واقعیتونو

بنا نه وي او په هغو کښې د تحقق او
څیړنې روحیه نه لیدل کیږي نو څرګنده

ده چې دا ډول قضاوتونه د ځان سره بدې
نتیجې را پیدا کوي.
په دې اساس په کار ده چې ځوانان او د ځوان

افکارو خاوندان د خپلو خلکو د نیکمرغی
او ولسي کامیابیو په نظر کښې نیولو سره تر
وسه وسه په اجتماعي او انفرادي مسایلو

کښې د سالم او واقعي قضاوتونو ملاتړ
وکړي او د هغو بې ځایو چټي قضاوتونو
پر ضد چې په هغو کښې د تحقیق او او څیړنې

عالي روحیه هیڅ نه وي، فعاله مبارزه وکړي
او د اموقع ورنه کړي چې دغه پوچ قضاوتونه
ئې د بد بینۍ، خودخواهۍ او نورو ناوړو

بدبختیو کندو ته وغورځوي.
نو راسئ چې د جمهوري نظام د مثبتې
کړنلارې په پیروي د خپل هیواد او خپلې

خاورې او خپلې ټولنې د عمومي ښیګڼو او
پرمختګونو په خاطر په ځانو کې د جمهوریت
پالنې عالي احساسات غښتلي او په دې لار کښې

و هر ډول قربانیو ته ځانونه چمتو
کړو.

د حمید انتخاب

# ادب څه ته وايي؟

وايي چې انسان يو نور او جامه يي دوهم
نوردى دغسې ژبه يو نور او ادب يي دوهم
نوردى كله چې ژبه د ادب په ګڼه ښايسته
شي نو په هغې كښې جمال او ښكلا پوځاى
ليدل كيږي.
داخبره هرچا منلې ده چې ژوندى ولس

به د يو ژوندى ادب خاوندوي او ژوندى ادب
به يو ژوندى ولس او تبر لري. دا دواړه يو
تر بله پوخ تړون او ټينګ پيوستون لري.

ادب د ژوندانه تصوير او تفسير دى.
ادب د يوه اولس د فكرى ځلا اورڼا
نوم دى.

ادب د يوه ملت د پوهې او ځير كه
ښه ده
ادب د حقيقت رڼا او د صداقت ټر ېښنا ده

ادب د ژوندانه لاربنود او رهنما دى.
كه څه هم ځينې كسان ادب له ژوند او
سياست څخه جلا كوي مګر دا نظر يه په عملي

ډګر كښې كوم ارزښت نه لري. البته په ظاهر
كښې د (ادب د ادب د پاره) اصطلاح هم شته
خو يوه تشه ادبي ټوټه هم د ژوندانه د

تصوير او تفسير له چوكاټ څخه نشي وتلاى
كه د مادى شيانو رسم او تصويروي نو
د ژوند تصوير او كه د جذباتو او احساساتو

ښوونه او څرګندونه وي نو د ژوند تفسير
بلل كيږي.

هر كله چې ژوند او سياست سره لازم او
ملزوم او يو تر بله تړلي دي نو ځكه د ادب
او سياست تر منځ هم خامخا د ارتباط مزى

غزيدلى دى.
ژوندى ادب په دماغو نو كښې د سياست
رڼا اچولى شي او سياسي قوت په ادب كښې

دودى او ترقي سا پو كلى شي.
ادب انساني ژوند له فناڅخه ساتي او
ولسونه له وركيدو څخه ژغوري

مكسيم ګوركي وايي: ادب د انسانيت
مجسم دى ادب انسان ته د خپلو اك ښكلي
او سپيڅلي ژوندلار ښيي او له تيرو تنو څخه

يي ساتي. د ښتيني ادب د زماني او حالاتو
تابع او مريي نه وي بلكه زمانه او حالات
د هغه تابع وي.

ښه او لوړ ادب هغه دى چې د خلكو
احساسات و پاروي، خويونه او عادتونه
يي پاك او صفا كړي او د خير او نيكي په لور

يي سوق كړي.
منلي او سپيڅلي ادب هغه دى چې هر څوك
د خپل حال سره سم د ژوندانه په لارو چارو

و پوهوي او د ژوندانه غرض او مقصد په ښه
غالب كښې خلكو ته وښاندې كړي.
د ادب مقام د بشر په تاريخ كښې ډير

زيات اولوړ دى د يوه لوى سړى خبره ده
څوك چې خپل افكار په ښه توګه ل نسي

څرګندولای معلومیږي چې د ده افکار
په اصل کښې سم ترتیب او تنظیم نه لري.
د دنیا هر لوی مشر او لیډر ترڅو چې
ادیب نه وي یعني ښه وینا او لیکنه ونه کړای
شي هغه هیڅکله د مشرۍ او لیډرۍ جګ
مقام ته نشي ختلای. په دې لحاظ ویلای
شو چې ادب د نوي ژوند جوړونکی او د
قومونو د لوړتیا ځینه ده.

د ادب کلمه په عربي، دري، اردو، پښتو او
نورو ژبو کښې یو شان استعمالیږي د دې
کلمې نورې څانګې او ریښې هم په دغو ژبو
کښې شته مګر په عربي کښې یې ډېر زیات
دي لکه، ادیب، مؤدب او نور. په عربي کتابونو
کښې د ادب لغوي معناوې دا دي:
(۱) بلنه او دعوت (۲) پوهه او ځیرکي
(۳) د حد او اندازې ساتنه.

ځینې کسان د ادب په مفهوم کښې ښېګڼه
ښه سلوک او نیک چلند هم شامل بولي.

په فني لحاظ د ادب د پاره زیات
تعبیرونه چې خیالونه او فکرونه میدان ته
راباسي د ادب فن بلل کیږي. څوک وایي
چې په ښه توګه او خوندور ډول د انسان
ریښتیاني افکار او احساسات څرګندول او
بیانول ادب دی

ځینې وایي چې ادب هغه فن دی چې
د پاکو احساساتو په څوځولو سره د ټولنې
خلک د خیر په لورې بیایي او دوی ته د خیر
معنی ورښیي. څوک وایي چې د فطرت
د ښایست ترننداری وروسته چې زموږ په
دماغ کې کوم ښایسته خیالونه ګرزي
د هغو څرګندول ادب دی. ځینې پوهان
د ادب په لمن کښې ټولې بشري پوهنې
رانغاړي او ځینې یې په یو څو خاصو فنونو
پورې محدود بولي.

په اوسني عصر کښې ادب د ژوندانه
تفسیر او لارښوونکی ګڼل کیږي یعني
څرنګه چې ادب د ژوندانه هنداره بولي نو
دغسې یې د ژوندانه د ښه کولو یوه ښه وسیله
هم ګڼي کوم کلام او وینا چې په انساني
ژوندانه کښې ذوق او خوند پیدا کوي،
ژوندانه ته وده او ترقي ورکوي او خلک
د ښایست او تناسب په چوکاټ کښې د ننه د
پوهې او نیکمرغۍ خوا ته رابولي، هغه
ادبي فن او ادبي پوهنه ده.

په ادب کښې هم د جمال او ښایست پلټنه
کیږي او هم پکښې د ژوندانه پټ او پنا
اړخونه را څرګندیږي په دې لحاظ ادب ته
هم پوهه ویلای شو او هم فن بلل کیږي.

(د ۲۹ مخ پاته)

## ادب نن ادیب ته...

دا هم له اوسني ادیب څخه د ادب د زړه
کومې تقاضا ده چې د ټولو کړاوونو او ستو
نزو ګالو هدف باید له یوه پړاو څخه
و بل پړاو ته اوښتل او دا یې پر مخ تګ
وي.

نه دا چې عصر، خلک، او چاپېریال له
ادیب څخه یو څه غواړي او دی بل څه کوي
په دې وخت کې ادیب باید خامخا د ولس
او وجدان حکمیت او د تاریخ بې رحمه
قضاوت هم هیر نه کړي نو خدای دې موږ
له داسې ادب او داسې ادیب څخه وساتي.

(د ۷ مخ پاته)

## د پښتونستان د مسئلې...

مسلمانان يي په بنګله‌دېش کي شهيدان کړل او بيا هم هغه حکومت دی چي د بنګله‌دېش د په‌رسميت پېژندلو د پاره يي لارهوارول.

د پاکستان « اسلامي » حکومت د اسلام څخه يوه سياسي حربه جوړه کړې ده چي په تبليغاتو او پروپاګنډې وسايلو کي يي استعمالوي خو که څوک پوښتنه څخه وکي چي پښتانه او بلوڅ نو کافران دي چي تاسي بمبارۍ باندي کوئ په داسي حال کي چي ځان مسلمان بولي.

پنجابي حکومت په ځواب کي وايي چي دوی ياغي سوي دي

دلته نو بايد ورته وويل وسي چي دوی ياغي نه‌دي، دوی حق غواړي بلکه تاسي غاصبان ياست چي د هغو حق مو پايماله کړی‌دی.

نو په اسلام کي خو د غاصبانو او ظالمانو پر ضد جهاد لازم دی دغه خبره د پاکستان حکومت نسي زغملای ځکه نو په بمبارۍ لاس پوري کوي او قتل و قتال ته ملا تړي

اوس نو دا قضاوت محترمو لوستونکو او د بصيرت خاوندانو ته سپارو چي د پاکستان د استعماري حکومت رويه د خپل خلف يعني انګريزي استعمار سره څه توپير لري. آيا د پاکستان په نامه مسلمان حکومت د انګريزي غير مسلمان حکومت په څير زموږ پر مسلمانو وروڼو ټانګونه نه‌چلوی او بمباري نه ورباندي کوي جېلخاني يي نه‌دي په ډکي کړي بې ګناه ښځي يي نه‌دي کونډي کړي او معصوم کوچنيان يي نه‌دي يتيمان کړي؟

هر څه يي کړي‌دي. په هيڅ ظالمانه عمل يي صرفه نه‌ده کړې. ځکه نو اوس دغه وخت رارسيدلی دی چي د خپلو جابرانه اعمالو سزا وويني څه چي يي کرلي دي د هغو دريبلو انتظار وباسي او بالاخره ډېر ژر د پښتونستان واقعيت په غټو سترګو مشاهده کړي.

(د ۲۷ مخ پاته)

## د کوچنيانو بين المللي ورځ...

او څرګندولو موقع ورکړه سي څو هغوی په ځان کي د لويوالي احساس پيدا کي او په دې ډول د هغو روحي بنيه قوي سي.

د کوچنيانو زيات قيد و بس او ترټل برعکس ناوړه نتيجې ورکوي.

ځکه چي دا سپېڅلي مخلوق تر هر څه زيات د مور او پلار صميميت او شفقت ته اړه تيا لري. نو هغه کوچنيان چي د ژوند په دغه حساسه مرحله کي د شکنجې او ترټلو سره مخامخ سوي دي همېشه يي ژوند د لويو عقدو او محروميتو څخه ډک وي.

دغه اصل ته په توجه کولو سره بايد د کوچنيانو په غذا، لباس او راشه‌درشه کي ډېره جدي پاملرنه وسي او د هغو روزنه يو سرسري مسئله تلقي نه شي.

بلکه د کوچنيانو روزنه لکه څرنګه چي ښايي، يوه ډېره مشکله وظيفه ده چي د کور په محيط کي

« نور د پښتو په دريم مخ کي

عبدالغني جمالي

# موږ ولې بېرېږو

بېره یوه نفسي معامله ده هرزنده سر که انسان وي که حیوان هغه بېرېږي خو داچې د بېرې اصلي عامل څه شی دی څه غور غواړي.

د امسئله د روحیات پېژندونکو تر ژورې څېړنې لاندې ده.

داجتماعي روحیاتو څېړونکي د بېرې عوامل ټوله د فرد په محیط پورې مربوط بولي، یعني اجتماعي تربیه په دغه اصل کې ډېره موثره ده. د مثال په ډول په جاپان کې په عنعنوي ډول کوچنیانو ته چې عمر یې دولس کلو ته ورسېږي دا تربیه ورکوي چې په میاشت کې دوه واره شپه په ځنګله یاغره کې تېره کړي او له دغه وخته د دوی د کوچنیانو له مغزو څخه بېره وزي خو زموږ ځینې شېر ایتي ځوانان چې د شپې له کوره وزي نو غړې یې رېږدي.

همدغه د تربیې نقص دی او د بلې خوا اجتماعي ماحول غیر منسجم راغلی دی چې موږ یو د لوی اقتدار خاوند مامور وینو چې خپلو زیر دستانو ته چې امر ورکوي د «اصولاً و قانوناً اجرا شو» د تر کلمې زیات څه نه لیکي او دا یوه بېره یا بې اعتمادي ده. ځکه قانون او اصول خو ده زیر دست مامور ته هم ور معلوم دي دلته د یوه آمر ابتکار په کار دی چې په خپل امر کې یې زیر دست ته ابلاغ کړي.

داخو د رسمیاتو برخه ده نو رانو په هره لحظه او هره موضوع کې زموږ هر څوک د یوې بېرې سره مخامخ دی او دا بېرې زموږ اجتماعي وضع ډېره را کښته کړې ده.

هر کله که موږ یا موږ غوندې یوه بله ټولنه تر هر څه وړاندې په دغه برخه کې د تربیې او روزنې په لحاظ اساسي پروګرام و نه طرح نه کړي نو د ټولنې غړي به جبون، بېریدونکي او د ژوند له ثابتو اړخونو څخه منزوي وي او د دې کار منفي تاثیر د هېواد په ټولو اوضاعو کې ډېر بد عواقب پرېږدي.

په نتیجه کې باید ووایو چې بېره یو وهمي تصور دی او دا تصور په روزنه او تربیه له منځه تلای سي.

«۱۵ مخ پاته»

# د مطبوعاتو او سواد...

په دې اساس جمهوري دولت د ۱۳۵۲ کال په پیمانې کې د پوهنې دوزارت په چوکاټ کې له بې سوادۍ سره د مبارزې ملي اداره

فعاله کړه چې په علمي اساساتو ولاړه او له نورو هغو هیوادونو څخه د لاس ته راغلو تجربو د په نظر کې نیولو سره چې له

بېسوادۍ سره د مبارزې د دریځ په لحاظ زموږ له هیواد سره ګډه وجهه لري د پرمختیائي منتخبه پروژې له فعالیتونو

سره په حیاتي بڼه او پړاو په پړاو داسې لوست د زده کولو عملیات ګډ شي او کرار کرار د یوې ملي مبارزې په بڼه په ټول

هیواد کې د دغې مبارزې لمن پراخه کړي.

البته د خلکو د نظر د افق او پوهې

د حدود د پراختیا په مسیر کې د سواد تعمیم یوازې یو لومړی ګام دی. د هغه وروسته پړاونو د هدفونو ترسره کېدل

زموږ د مطبوعاتو په غاړه دی چې د راډیوئي خپرونو د سمعي او بصري وسایلو او د کم سوادانو د مخصوصو مطبوعه موادو د

خپرولو او د عامه کتابخانو د جوړ ولو او د کلیوالي سیمو د پاره د ګرځنده کتابخانو د زیاتو شبکو له لارې د اجتماعي ټولنیز

، اقتصادي او فرهنګي ودې د ضرورت وړ عامه اطلاعاتو او اخلاقي کټورو معلوماتو د تعمیم په لار کې په ډېره اغېزمنه توګه هلې ځلې وکړي.

په پای کې د مطبوعاتو او سواد ورځ د ګران افغانستان د بېسوادۍ د بیخي

له منځه وړلو د پاره او د ټولنې د بې برخې ډلو ترمنځ د مطبوعاتو د تعمیم په لار کې چې حیاتي پوهه ورسره ده یوه بختوره

ورځ بولو او په دې امید چې ټول ملي دولتي او غیر دولتي موسسې او د ټولنې ټولې طبقې په دغه ملي مبارزه کې په ګډه ونډه

وکړي. هغو کسانو ته چې د سواد او مطبوعات

په لاره کې زیار باسي د دغې ورځې مبارکي ورکوم او د لوی خدای له دربار څخه هغوی

ته د خدمت توفیق غواړم.

---

# د کوچنیانو...

د هغې مسئولیت والدینو او تر کورد باندې په روزنتونو او وړکتونو کې د امسئولیت و ښوونکو ته راجع دی. د دې

د پاره چې د هیواد سبا ورځې د پاره موخپل مسئولیت لېری کړی وي، لازمه ده چې سر له

اوسه د خپلو کوچنیانو په روزنه کې

د جمهوري نظام د مترقي روحیې سره سم او د عصر دا یجاباتو له مخې ښې پښې بدلون راولو څو دا دن ورځې زامن او د سبا پلرونه

د آینده مترقي افغانستان د جوړېدو بنسټ په ډېره عالي شیوه او مترقي مفکوره باندې بنا کړي.

# وصیت

چی خاوړې شی می په قبروی ولاړی
که غلام مړ وم راځی تو کړی پرې لاړی
که په خپلو وینو نه وم لمبېدلی
په ما مه پلیتوی د جومات غاړی
چی قطرې قطرې می پوځ د دښمن نه کا
موری ما پسی په کوم مخ به ته ژاړی
یا به دا بی ننګه ملک باغ عدن کړم
یا به کړم د پښتنو کوڅی ویجاړی

«غنی خان»

د کندهار دولتی مطبعه